غمه! نیـــږدې ښه یــې د پامـــه وځو
د میخـــــانې د احترامــــــه وځو

د تـــاك لاســـونه پـــه دعـــا غـــځوو
د خـودۍ څاڅکــي یــو د جامــه وځو

د شــپې خــبرې مــو د ســتورو ســره
د لمــر نظــر یـــو ســتا د ګامــه وځو

د زخمــو شــمېر د غــم بــازار کــې لــرو
رنــګ د بې رنــګ یــو د تمامــه وځو

جنــازې نــه یــو چــې پــه اوښکــو لامبــو
پـــرواز د روح یبـــو د ناکامـــه وځو

تخــت د صبــا د زلیخــا کچکــول کــې
خواســت د یوسـف یــو د کلامــه وځو

۲۸/۷/۱۹۹۳
کراچی

# ته راته ووایه

بوی یې راځي د نیلوفر لپو کې
لکه د ستورو نقره یي خوبونه
لکه ځواني د ګلاب رنګه، بنګه
لکه آلماس دانه، دانه

چې زموږ تر سترګو ځاځي
او په پردی مځکو ګلان زېږوي

۞۞۞

یاد یې راځي لکه د شاتو طلایي کورونه
لکه ښکلو نه د لمر
چې د ښو په څوکویې اخلي
د غاټول د جامه

۞۞۞

یاد یې راځي لکه سپوږمی هاله کې
لکه د نور خوبونه
لکه د طور خبرې
چې وموسی "ع" ته د صبرونو
په صله کې راځي
یاد یې راځي لمن، لمن
پلو، پلو
ځولی، ځولی
خیالونه

۞۞۞

زموږ د کلي نجونې اوس د کراچۍ
په ساحلي شګو کې
د خپل تقدير ورکې او تورې
آئينې لټوي
زموږ د کلي نجونې اوس په خيبري تږو کې
د ماتو ستورو تنۍ
د بې صبرۍ او بېلتانه په ګرېوانه ټك وهي
زموږ د کلي نجونې اوس آينو ته نه ګوري هېڅ
نه يې په سترګو رانجه
نه يې د تندي په سبا زانګې د لمر ټيکونه
نه يې خندا کې شته دي
د پسرلي خوبونه
ته راته ووايه د ژوند ښاپېرۍ!
زموږ د خوښۍ د ناوې
لاسونه نه چا پرې کړي؟
چې د ډولۍ ځينې يې
د سروګلونو په ځای
سره بارانونه د شفق اورېږي
زموږ په خاورينو کوڅو
زموږ د تلويخ په تاو، وهلو پانو
چا د تېرو تورو بارلن پېرزو کړ؟
چا په اور وويشتل زموږه
د نيکو قبرونه؟

۞۞۞

ته راته ووایه!
زموږ په کعبه
د ابرهې لښکر د کومې راغی؟
چې د پیلانو پښویې
د مرګ تصویر زموږ په ښارکې جوړ کړ
زموږ د وطن انګورې ډکې پیالې
د زهرو چا ډکې کړې؟
چې د باغوان د ماشوم زوی
د رګو څانګې په خزان رژوي
او د زړې بوډۍ وریښمینه لور به
دلۍ ګټې په لیلام رانیسي
ته!
راته ووایه...

۷/۷/۱۹۹۳
کراچۍ



رنګینې شپې دي په پیالو کې راځي
جام د سپوږمۍ په آئینو کې راځي
خیال د ښو یې د پرهر په شونډو
خوږ تبسم دی په اغزو کې راځي

# زه لکه ماته څانګه

ته رانه لیرې یې، لیرې
لکه سراب د اوبو نه
لکه آلماس د خاورو نه
لکه آسمان د مځکې نه
او ما د خپل زړه په تیاره کوټوکې
د سپوږمۍ په لپو وشیندلې
د ساه د عطرونو باران مې
درباندې پیرزو کړ
ستا خیال مې د بڼو په نازکو تارونو
د ګرېوان په پرهرونو انځور کړ
یو ښکلی انځور
هغه راته وکتل
او ما د اوښکو باران پرې تویې کړ
ما ورته وژړل چې ته نه یې
زه لکه ماته ببړۍ یم
او یا
لکه مات پارو چې:

د ساحل غاړې ته لاسونه اچوي
خو د څپو امیلونه یې د لاس نه
ښوئیږي
ما ورته وژړل
چې ته نه یې زه لکه ماته څانګه
چې:
د سیلیو د قهرجنو څپېړو سره
زګېروي کوي او ژاړي
لکه بې اسرې بوډۍ
لکه یسئیر ماشوم
چې:
د مور د ګرېوانه تنۍ
په خوب کېویني
ما ورته وژړل
او بیا مې هم وژړل
دومره مې وژړل
چې د ببلتون د زهرو جام
لبرېز، لبرېز
زما د ښونډو غاړه غړۍ شو
او ستا انځور رانه ورک

۱۲/۱/۱۹۹۴
کراچۍ

د نفس په پـل مـو راشــه ټول ځګر پرهـر، پرهـر يـو
جام د خيالـه راروانشه سـتا پـه لـور نظـر، نظـر يـو

د ښو په شپو کې تلل کړو د رخسـار آينو کې ګورو
دتيـاره غمـه پيـدا شــو څه ځلا ګوهــر، ګوهــر يــو

نـه چا وويـل چـې خمـه نـه مـوږ وويـل چـې مـه ځه
نـه پـه پـل د زليخـا يـو نـه يوسف دلـبر، دلـبر يـو

شپې رنګينې په هر پل مو په سلګو تـر سبا دروموو
پښې تناکې پـه سر اور وړو څه رڼا بصر، بصـر يـو

دې برغمه لا مړه نه شوو په بېلتون کې ستړي نه شوو
لا د غم ساقي تـه ناست يـو د پيـالو خـبر، خـبر يـو

پـه رکـوع د عقـل پـښو تــه ځنځيرونـه اخلـو پلـورو
د صهباد سرکړې يو هوښيـار توبـه پـه سر، سر يـو

۲۲/۱/۱۹۹۴
کراچی

# د ګلونو په ژبه

رڼغ دې د کومې خوا راځي
چې زما خوب
د نیلوفر د نخانه ډك دی؟
د قدمونو رڼغ دې
د کوم موسم سره راځي
چې اوښ
د واورې ستورې په پټه خوله
د بن د چوغکو فتحې ته
د سپین سبا
مبارکي وایي
پلونه په سپېدو کنبېږده
او د سبا ګرد وهلو موسمونو ته
لرې راشه
د ګلونو په ژبه خبرې وکه
چې بنار
د سپینو جامې په تن کړې
او، ویښ دی.



د پرهر پانې رژېږي پسرلیه د غم راشه
سرې غوټې د درد تناکې د اغزو سره پخلاشه
بار د ترمو تروو اوښکو د زخمي بڼو په سر ورو
دا کودر، کودر کړېوان ته منګوټیه په ګډا شه
د جانان، جانان یادونه مو د زړه په شفق ناست دي
په سجده شه د عشق لمره د ماښام لمونځه روا شه
د سپوږمۍ د سپینو لیچو به د ستورو پیالې واخلو
یه! د شپنو کفره ظالمه! راورېږه راپیدا شه
ښنګه تویي خنګل توتې شوو د ځوانۍ په آینو کې
نه! مور خپله آینه یو وخته وګوره رڼا شه
د فراق شمر مو پرې کړي د رګونو شنې، شنې ځانګې
د "ملال" شهیده خیاله زمور د زړه په کربلا شه

۲/۳/۱۹۹۴

کراچۍ

د غـــزل پـــه څېو وختـــو ګلان شـــوو
مســافر چې د صـراط وو جنتيـان شــوو

د پرهـر اوښـکـې توئـېږي مـازديګر دی
چې د لمر پتې پرېږدو نـو طبيبـان شـوو

باغ د حبـن کیسـه وکـړه او، ويـده شـو
مـوږ تـه ګوره تـر ابـده دربانــان شــو

راترغـاړه شـوله سـتوري، سپوږمۍ واړه
په ښو چې د آسـمان پـه لـور روان شـوو

د پـايکوب د مـاښامونو پـه جـرس کـې
همنـوا د "جـهاني" او د "کـاروان" شــوو

۲۶/۳/۱۹۹۵
کراچۍ

# خواست

زما یقین دی چې ته هرڅه وینې

زما باور دی چې ته هر څه اورې

زما جانانه د جهان جانانه

تر تا قربان تر تا واری شم جانه

داسې لېمه راکړه

چې تا ووینم

که داسې نه کېږي زما باداره

داسې احساس خو راته راکړه ښکلی

چې تا په درك کړم

د تفسیر له بامه

۱۹/۲/۱۹۹۷

# دعا

هرڅه سترې شوه،
هرڅه مات شوه
تېره شپه
نن ماښام
ګل خاورو ته!
خاورو کنډوالې ته
وژړل
آینو ګړکیو ته
او ګړکیو دهوالونو ته!
وویل:
شپې غبرګې شپې زېږوي
او د ورځو سپینه ښاپېرۍ شنډه ده
په کوکو ژاړي
څوک یې ږغ نه اوري
هرڅه ژاړي
ооо
د لمر زرینې ګوتې پرې شوې
او د پښو د ګلو تنکۍ ملاوې
سترې او بې خوبه لندامونه
د پرخود بار لاندې مات شوه
هرڅه مات شوه

هرڅه ستړي شوه

٭٭٭

د وخت پلونه په شا راغله

ذکریا"ع" اره شو

مسیح"ع" مصلوب شو

او د وخت یزیدانو

زما د وطن په زخمي ځګر

د کربلا شفقو نه ستړي کړه

د فرقان طلایي پاڼو ته یې

د یوسف"ع" ګرېوان

پیلوزي کړ

او د جهالت په ګډه اور ته سر شوه

هرڅه ستړي،

هرڅه مات

او هرڅه ژاړي

٭٭٭

ای خدایه"ج"!

ای صبوره خدایه"ج"!

د مسجدو دېوالونه

او د محرابونو شونډې

په زاریو سر دي

د تندیو لمرین جامونه

د لېمو په کچکولونو کې

لبرېز،

لبرېز شوه

اوښکو د ورغوو هینډارو ته:
او هینډارو سپېرو
مخونو ته،
وژړل
هرڅه ژاړي
هرڅه ستړي شوه
✿✿✿
د ځانګو د رګونو نه
او د ونو د قدونو نه
د پسرلي تصور کډه کړې
پوړنې،
د ګلپاڼو پوړنې
د ظالمو اغزیو په نوکو
غلبېل، غلبېل شوه
او د غوټیو ګرېوانو ته
تورو توپانو لاس واچاوه
غوټۍ ژاړي
ګلپاڼې ژاړي
هرڅه ژاړي
✿✿✿
درود پر تا محمده"ص"!
درود ستا پر آل محمده"ص"!
ستا امت
ستا خوربدلی امت
د ناشطی په شانې

د تړولو صندوقانو
بنديان شوه،
او نمرودي اورونه ورته ستړي شوه،
او څنګه د آسيې د مظلوميت په تصوير
د ظلم ميخونه تك وهل شوه
٭٭٭
ربه(ج)!
بصيره ربه!
تا هرڅه وليدل
تا هرڅه وکتل
موسى(ع) ته امسا ورکړه
قلزم کوڅې، کوڅې کړه
او فرعونان پکې غرق
د اوښکو په پرهرونو کې
د شبنم آينې مسکې
کړه،
او پرديسې شپې
د سپوږمۍ په پيالو
خروبې،
٭٭٭
پروردګاره!
د ابرهه لښکره
سنګباران کړه
"قليس" وران او کعبه ژانه روغه
وساته

خدایه(ج) !
مورړ ته یو ځل بیا
د خپل وطن جنتونه
فردوسونه،
غاټول او
دامانونه
وچې تیرې.
دنګ، دنګ غرونه
سپېرې خاورې
ټول سیندونه
راته وبخښه
راته وبخښه مات زړونه
لویه خدایه(ج)!
لویه خدایه(ج)!

۲۹/۴/۱۹۹۴
کراچۍ



| |
|---|
| ژړانده مازيګره يم راځې که نه راځې<br>په ټکر پرېوتې لمره يم راځې که نه راځې |

چې زخمونه مې سپړلي، څه ګلونه مې کړلي
پرهرونه مې ګنډلي، پرهرونه مې کړلي

راته ګوره شاجهانه! په جهان يم بې جانانه
نه! جانان مې يې جانانه ستا ذکرونه مې کړلي

څو نه توان په ګوتو ږدمه، دروازه دې شرنګومه
د ورغوو په کچکول کې څو سوالونه مې کړلي

ټول وجود آينه آينه شوم په محل دې مېلمنه شوم
په لمن کې سپرلي غوارم ګرېوانونه مې کړلي

ثريا يم، ثريا يم ستا په بام شپه تر سبا يم
لاس مې ورکړلو سپوږمۍ ته محشرونه مې کړلي

۱۵/۲/۱۹۹۵
کراچۍ

وګورئ بڼو کې مو سحر راځي
شپې يو خو سپېدو کې مو سحر راځي

لمر په غوړېدو دی څانګې، څانګې شو
هسک شو قيامو کې مو سحر راځي

پورته يې پلو کړ ګوتې، ګوتې شوه
پرخه، په غوټو کې مو سحر راځي

خم چې ډک ماښام تر بل ماښامه شو
جام يو کنارو کې مو سحر راځي

اوښکو پهٔ محراب د زنې وخندل
وې ويل سجدو کې مو سحر راځي

۲۴/۲/۱۹۹۵
کراچی

# لکه مسکا د کابل

پرخې د ګل پاڼو ته!

وویله،

خوب مې لیدلی

بس یو تا تې وایم

زموږ د باور خلیل

د اور په څپو

د امید شونډو ته!

غاټول د ایمان

کتار، کتار کېښېنږول

او،

شپه مو پخه شوه

د سپوږمۍ لمورونه

د تیارې ګوتې

لوکوړې او درومې

ته ورته وګوره

شپه ځنګه ژاړي

پلويي ډك

له ثريا ، پروين شو

اوس به سهار لکه سپين آس

رادرومي

پخپلو ورږو کې به

نازنين زېرى د سپرلي

راوړي

لکه مسکا د کابل

د ستورو سپين

خوبونه

۲/۴/۱۹۹۵

کراچی

د پرهر کبسي خمار وړي صراحي د سترګو جام شه
غمه! دې کوڅې ته راشه بدي وکړه او نيکنام شه

د سپوږمۍ ګرېوان پاره شو رڼالېږدي ستوري زېږدي
د سبا نګارخانو کې اينه شه اينه پام شه

دا غزال غز ل د حسن رانه ځغلي صحرا راغله
د خردګامه توپان شه زولنې يې ګام په ګام شه

د ښو په څوکو لولو آيتونه د فراق يې
د نيمکښو سترګو غېږ کې سپېدې چاودي شپه تمام شه

غوټۍ سپورې شونډې خاندي شبنمونه شهيد شوي
د اغزو په غشو تير شه د سبا باده! خرام شه

د لبريزو پيالو نه د شها زلفې خورې که
ساقي تللى دى د ښاره رندانه لکه خيام شه

مست د خړو تورو، ورځو په بام توى مازديګر راغلى
خو شه چين لکه "پروين" شه زهره فام لکه ماښام شه

۳۰/۷/۱۹۹۵
کراچۍ

چې هم فراق منو هم پور اخلو
غمه! دا ستا په سر دا زور اخلو

په هره خوا چې ګورو تا لټوو
ای رانه لېرې په زړه زور اخلو

کوڅې، کوڅې مو د پښو تلې شولې
ورکو کوڅو ته توان به نور اخلو

وصل د شونډو د شبنمه سره
د خپلو اوښکو نه سرور اخلو

شپې د لېمو په غېږ کې وزنګوو
لکه سبا په بڼو اور اخلو

د ګل په شونډو مو سودا کړې وه
اوس د اغزو په سر پېغور اخلو

په هم ګوزار د غم چې ولګېږو
د زړه د زخم نه ټکور اخلو

شپې د بېلتون اوړدې د عمره سره
چا دړ دستورو یه سر خور اخلو

۲۳/۱/۱۹۹۳

پېښور

ګرېوان تـه راغللـې کـرې د زړه پـه سر مـې خــېژي
دا جلوه ګرې اوښکـې ګورې پـه پرهـر مــې خــېژي
ډکـــه د ســـتورو لمـــڼ کـــوم طـرف تـــه وپاشـــمه؟
تـورې تيـارې دي پـه لېمـو وو پـه نظر مــې خــېژي

پرهر مو سبا خېږي، ځګر مو سبا خېږي
د درد سپرلي راغلی په در مو سبا ښېږي

بانه کېږدي خويونه رخسار بيابانونه
د اوښکو صدفونه، ګوهر مو سبا ښېږي

ګيسو پرېشانه ولونه تناکې ګرېوانونه
آئينې اوښکې لالونه په لمر مو سبا ښېږي

په صف، صف کتارونه جانان، جانان زخمونه
د زړه په محرابونه، منبر مو سبا ښېږي

د هجر ماښامونه، د خيال سپوږمۍ مخونه
کړې، کړې جامونه، ساغر مو سبا ښېږي

۱۷/۳/۱۹۹۶
کراچۍ

لېونـي نـه يـو چـې لـه داره تښتـو
مـوږ لـه دې سـتړي انتظـاره تښتـو

پـل د خواهـش مـو د اوبـو پـه څپـو
لکـه پـارو تـل د کـراره تښتـو

د شپـو شـراب سـتورو ځکلـي رانـه
د تيـارو غـوړپ يـو د خمـاره تښتـو

لـه آينـو مـو اخيسـتل زده کـړي
رڼا د عکـس يـو د غبـاره تښتـو

د بڼو زغـم درانـه، درانـه بارونـه
د ګرېوان ورتـه لـه ځمبـاره تښتـو

د پرهـر شـوق او د سـپرلي خوبونـه
لېته خپـله نـه ځو لـه ګلـزاره تښتـو

۱/۵/۱۹۹۶
کراچی

د بڼو ځانګو کې کړې شوو ثريا ته رسو
د اوښکو نجونې يو په يوه ادا سما ته رسو

کچکول د زړه مو دی نیولی ستا یادونه غواړو
کنعانه ګوره مقدسې زلیخا ته رسو

د تصور په شپه چې راشي او پرهر وسپړي
ژړا د ستورو، وي له درده و خندا ته رسو

دښت د رخسار او د تودو اوښکو پاسته لاسونه
دا التفات او نوازش وي چې غوغا ته رسو

د اغزو څوکې او شبنم، شبنم يادونه مسکي
مور په پښو کې د باران و منتها ته رسو

مور د کابل د توتې زړه او وران کاکله جارکړې
اوس يې هم ياد کې له ماښامه و سبا ته رسو

۳/۵/۱۹۹۶

کراچی



بويي د وفا چې د کاروانه راځي
کعنان ته زيرئ د جانانه راځي

خیال په سحر کې د لندو کسو له پامه راځي
شو ګیر وهلې پرخې شونډو ته له جامه راځي

د شونډو خط مو یې لوستلی د شفق په سترګو
بوی د نفس یې راته اوس له هر ماښامه راځي

نه دې راتلل شوه نه دې تلل شوه شپه هم هسې شپه ده
تشه ښکالو دي د راتلو د تلو د بامه راځي

ساقي په کاڼو ګټومه ولې کوخې ته ووزې
غم د دې وکړې چې کفرونه له امامه راځي

شپې د فراق د انتظار د زړه محراب ته ولاړې
الله، الله وایي سجدې یې له کلامه راځي

ورمه د بوی په بانه راغله ګل پرهر، پرهر شو
چې څه یې وویل ادایې له خرامه راځي

۷/۵/۱۹۹۶
کراچی

لکه شپې مو داسې ورځې لکه ورځې داسې شپې دي
د سپوږمۍ پیاله نسکوره د رڼا مراندې مو پرې دي

یو خمار داسویلیو د پرهر شونډې بې واکې
اغزي کومې خوا ته لاړل؟ خو بولې د ګل پښې دي

سپېرې شونډې د جام سپورې د آزار ګردو نیولې
ساقیان دي خپه شوي فراق جنې میخانې دي

بانه تیت د چا لمن کې ځنځیري سلسلې راغلې
د سپېدو لاس کې کړې دي پایزیبو نه زولنې دي

شمعه هسك سر په محفل کې په لمبه ژبه خاموشه
څه دروشوله پتنګه؟ په تریکو دې شیبې دي

سندریزې تورې څوني لمر په سرو منګلو اخلې
شپه په بام توره نجلۍ ده په شفق یې شونډې سرې دي

۱۴/۵/۱۹۹۶
کراچۍ

په چاودې زړه لکه خرماتر نخلستانه درومو
د روح ریګزار کې د ساه جل یو ترګرېوانه درومو

ستا د خیالو یوه ادا چې شوه د ستورو لپې
موږ په تناکو رخسارونو تر آسمانه درومو

د چا د شونډو تصور دی د مابنام شهنشاه
لکه لمر سوځو په شفق کې له خپل ځانه درومو

د شپې تجلی د لمر د غېږې د نور ډك خوبونه
دغه به موږ یو چې وطورته تر جانانه درومو

غم دې پرېشان لکه ښایست دی زما په تورو زلفو
شانه، شانه یو لځې پښې تر شبستانه درومو

ستا د خیالو زرین لاسونه زما پرهراننګي
سم په احساس له بدخشانه تر ایرانه درومو

۱۵/۵/۱۹۹۶
کراچۍ

د ګل پاڼې کـه پـه سـر وروړه اغـزو پـه خوکـو پـل ږدو
د رنګيـن عـذاب نګهـت يـو د څپـو پـه څوکـو پـل ږدو

ته د ستورو شهنشاه يې زمونږ شپې دې شوې مينځيانې
د سپوږمۍ پيالـه پـه شونډو د تيـارو پـه څوکـو پـل ږدو

د ګرېوان خـالي حجـرې كـې پرهرونـه كوربانـه شـوه
مـونږ د سـترګو پـه درشـل يـو د بڼو پـه څوکـو پـل ږدو

تـاك د كومـې ميخـانې نـه پـه شنو لپـو شراب وڅكـل
چې مـونږ كلـي د خيـام كـې د كـوزو پـه څوكـو پـل ږدو

سـره غـوټۍ د زړه ببباكـه د سـبا ګوتـې راسـپړي
لكـه مـونږ د تـاو پـه دښتـه د لمبـو پـه څوكـو پـل ږدو

د هوانـــرم لاســـونه او ګوزار د لمـــر د غشـــو
مـونږ تنهاكـې يـو د پرخـې د سپېدو پـه څوكـو پـل ږدو

دا د چا خيال سليمان دی چې يې تخت د ذهن په سيوري
هـره ورځ چـې مـونږ وردرومـو د آينـو پـه څوكـو پـل ږدو

۱۵/۵/۱۹۹۶
كراچۍ

چې ستا پل زما کوځې وې دا هم شپې هغه هم شپې وې
ښکلې درد ،درد ته اسرې وې داهم شپې هغه هم شپې وې
د تیارو زلفې به ول، ول د سپېدو ګوتو سپرلې
و شبنمونه به آئینې وې دا هم شپې هغه هم شپې وې

پــــه خندا، خنــــدا د اوښکـــــو پرهرونـــــه غزلونـــــه
پـــــه ادا، ادا د ســـــتورو ګرېوانونـــــه غزلونـــــه

د ښـو پـــه نـــرۍ ګوتـــو د ســـپوږمۍ پيالـــه مدهوشـــه
زمـــــوږ شــــپې دي ســــاقيانې هجرانونـــــه غزلونـــــه

درد څه ښکلی سکندر دی تاج د جم يې په سر ايښی
کـــــوڅه ټولـــــه آئينـــــه ده محلونـــــه غزلونـــــه

زمـــوږ د کلـــي د انـــګورو منـــګوټي نســـکور پراتـــه دي
تــــه د تـــاك پــــه چــــتر راشــــه منزلونــــه غزلونـــــه

د ايمان مسك احساسونه د بنګړو په شرنګاشرنګ لمي
چـــې لاســـونه پـــه ســــجدو ږدو محرابونـــه غزلونـــه

ګودر خوب د نجونو وليد زخمي سترګو د نـرګس کـې
غېږيــــــې ډکـــــه د لمـــــر خڼې قدمونـــــه غزلونــــه

چا ويل يوسف رادرومـي د ښکـالو نګهـت يـې راغـی
زليخـــا، زليخـــا ښار كـــې كچكولونـــه غزلونـــه

۱۷/۵/۱۹۹۶
کراچۍ

سپوږمۍ په ګرنګ پرېوتم آسمان چېرې او زه چېرې
د لمر د مدار ووتم ګردان چېرې او زه چېرې



لکه سبا د خندا نم اور و
د ژوند په دښتو مو شبنم اور و

سپرلی، سپرلی پرهر په وینو ساتو
د ترمو اوښکو پرې مرهم اور و

ښکالو د لمر ته په تبجنه شپه کې
سپوږمۍ او ستوري په تور تم اور و

شېبې د اوښکو د ځګر په دکان
ګوهر د لعلو په پرتم اور و

په سپینه پاڼه د خپل درد د رخسار
ټوټې، ټوټې زړه د قلم اور

۲۸/۱/۱۹۹۳

پېښور

دا به مو ایمان وي د ایمان په لور قدم اخلو
تېږي د رڼا یو د جانان په لور قدم اخلو

سیوري د خواهش په دېوالونو غځېدلي وي
موږ لکه شفق د پاس آسمان په لور قدم اخلو

یاد د چا په یاد کې د مهرونو تبسم راوړي
ستوري هوا راوړه کهکشان په لور قدم اخلو

تش دي قفسونه لاهوتي نغمې خاموشې دي
لاس کې کړې اخلو د زندان په لور قدم اخلو

ښکلې تنهایي ښکلې پرهر ښکلې د درد کیسه
چا ته یې تفسیر کړو بس د ځان په لور قدم اخلو

۱۹/۵/۱۹۹۶
کراچی

تــر ســتورو ښکلــې لــه خمبــاره راځي
برســاتي شــپې لــه هنــدو بــاره راځي

د شــونډو څوکــې او پيــالې د پرهــر
شــفق پــه لپــو لــه خونبــاره راځي

کــرم د دار يــې د بــڼو پــه څوکــو
ســت د ســاقي لــه انتظــاره راځي

د تال نفــس کــې مــو زخمــي ښکلونــه
لکــه بــهار چــې لــه بــهاره راځي

د تصــور عــادت د شــپو پــه څنو
آئينــې، آئينــې شــي تــر ســهاره راځي

تناکې پښې سپوږمۍ، سپوږمۍ خوېونه
جــوپــې د پرخــې دي لــه خــاره راځي

سپورې د خيال يې خپور د ذهن په غرمو
بــوى د وصــال يــې لــه پرهــاره راځي

د زړه و تخــت تــه بــهرني غمونــه
ښکلــي مريــان ډي لــه بــازاره راځي

۲۱/۷/۱۹۹۶
کراچۍ

ښکاري دا چې راته ښکلې يې سپرلی يې
د جانان د مينې زخمه ګلالۍ يې

موږ آئينې، آئينې د ذهن په ګلو پلورو
تصوره! ته وحشي شوې غرځنې يې

ستوري توی ښه دي ماښام دعا په لپو
هرځايي درده راخپل شه لږ پردی يې

موږ خطونه د شپو ولوسته ستنېږو
مځازديګره! ته هم هغسې زلمی يې

د ګيسو په شپه مو ورغ مه شه برسېره
غمه! بيا به دا ادعا کړې چې لومړی يې

د فراق ساقي سپوږمۍ په جام کې توی کړه
د سپيدو د شوندو زخمه! خندنۍ يې

داغ د زړه تر سترګو توی محفل رنګين شو
خوشه چين حسرته! ته لا ځنډنی يې

۲۲/۷/۱۹۹۶
کراچۍ

# څوک به داسې راشي

سترې مو سوالګرې سترګې مات مو کجکولونه دي
ورانې مو کوڅې د زلفو مات يې ولونه، ولونه دي

تورې مو آئينې شوې آئينه سازمو په مابنام مين
وخت د ده غلام شو او غلام شو په غلام مين

ورک مو د تندي خال په پرديو مالتونو کې
تيک مو زنګ وهلی په تاخچو او په پوښونو کې

تلې مو پرهر، پرهر، پرهر د تلو پلو نه دي
سوي مو ورغوي تېرې څوکې کمرونه دي

شونډې مو دي وچې په آهونو کې مو جل سوزي
څيرې مو پوړنې په تندي مو پاس اور بل سوزي

لوڼ مازديګرونه، نه منګي او نه ګودر لرو
سرې ګوتې په وينو نه نکريزي نه اختر لرو

سورۍ، سورۍ مو لمنې د اغزيو پرې نوکارې دي
خدايه(ج) رسيدو ته دې درغلې کومې لارې دي

قــار د فرعونــانو آســيې راتــه وژلــې دي
ســوې د معصــوم موســى پــه اور دواړه منګولــې دي

خــوارې مــو بلقيســې نــه ســبا او نــه آئينــې لــري
ســوال کــړي زليخــا وې نــه محــل او نــه اســرې لــري

پــاڼې د ګلاب مــو بــاروتونو مروړلــې دي
پرخــې ځوانيمــرګې او شــهيدې مــو بلبلــې دي

غــوځ مــو د چنــارو پــه فــولادو مړوندونــه دي
پـرې مـو د انـارو ســرې منګلــې شــنه لاســونه دي

ورځې داسې ورځې چې مــو شــپې ځينــې بيزارې دي
شپې مو داسې شپې چې هم قاتلې هم خونکارې دي

فتــح بــه ځوك راوړي زرغونــې مــو بــورې شــوې دي
ځيــرې ګرېوانونــه پښتنــې مــو بــورې شــوې دي

چپېرڼه دي هلالــې چــې زلميــو تــه مــو ننــګ راوړي
تشو مړونــدو تــه مــو بنګړي راوړي او شــرنګ راوړي

څوك به داسې راشي؟ چې د ورك يوسف خبر راوړي
بوی يې د ګريوان شي د نګهت په څېر وزر راوړي

مور چې پسې درومو نو دا ګارې د ګل پاڼې شي
مات شي دالوی غرونه د لعلونو کانې، کانې شي

مستې مو وږمې شي د سپرلي په ديدن والوزي
مست مو پسرلی شي لکه مشك په ختن والوزي

څوك به داسې راشي چې آدم په خندا راولي
خوا ته يې رباب او درخانۍ په موسکا راولي

چتر د انګورو مو موج خېزه لکه غرونه شي
څانګې يې ساقيانې او په لاس کې ډك جامونه شي

شپه مو راته ناوې کړي شاهومو د سبا په شان
ورځو ته دريې ورکړي جوپې راشي دوراپه شان

لومو د غنمو هم سپوږمۍ او هم لمرونه شي
لور مو هلالې شي د سرو زرو درمندونه شي

وريـځې مـو سـخي شـي او اغـزو تـه پـنې واغونـدي
لاس د بـاران راشــي او لمبــو تــه پــنې واغونــدي

خـړو پسـتو مځکـو تـه بربنـنـا د نـور شـراب راوړي
برالبي غروړي، غـروړي شي او پوځو ته شباب راوړي

پورتـه کـي بـانه تيـارې پـه غـېږ کـې ثريـا راشـي
څوڼې د شپې ول، ول په رخسـار د اوښکو بيـا راشـي

څوك بـه داسې راشـي چې غليـم نـه ولجـه ډال راوړي
سـرې عقـابي سـترګې وکـلات تـه د "سـيدال" راوړي

پلنـې مـور مـې لکـه اوربځې پـه آسـمان راشـي
بـوی د شـيدو مسـت لکـه وحشـت پـه بيابـان راشـي

مرانـدې د کيـږديو غـېږې ډکـې کـړي د ګلـو نـه
يا پلو نيم کښې د کېږدۍ خـوی واخلـي د نجونـو نـه

زرکـې د غـزل بـه مـو د طـور ځينـې نغمـې راوړي
ژونـد د تحـير بـه د شـېراز پـه هديـرې راوړي

محترم ورور کاروان ته اهدا

۲۵/۷/۱۹۹۶
کراچۍ

| ورځ زرينه، شپه پړوينه مابنام جام سحر امام دی |
| --- |
| د آئينو سوداګران يو داسي ښار کي مو قيام دی |

ژوند په جام کي د فراق ځاځکي خمار شو
دا به موږ يو چي مو ستړی انتظار شو
تور کاکل مابنام صهبا په لاس کي راغی
راځئ ورشو د سپوږمۍ تر پياله جار شو
د ګرېوان ښار کي خاموشه غوغا خېژي
زړه پرهر، پرهر بندي په سر د دار شو
موږ چي ښکلي ښېرا کړله مازديګر و
غم په مسته ژړا راغی زموږ هار شو
پسرلی ځادر کي نغښتی تر موږ تېر شو
بس نښان يې د قدم د سترګو خار شو
موږ د اوښکو په پايزيب ښکالو خپره کړه
وخت په دغه بهانه راغی راته ځار شو
راشه توی شه زموږ په کسو کي سحره!
ژړېنو کېږدۍ تولېږي کوچ و بار شو

۱/۸/۱۹۹۶

پاڼې و اغزو ته دا پرهر کسي لخ سروزي
يبلې مابنامونه د بنو تر مازديګر وزي

ستا ادا په ستورو کاڼي، کاڼي مرغلرې شوې
شپې مو په لمن کې په قدم تر روڼ سحر وزي

زه سوالګره نه يم چې دې خيال په سوالو وغواړم
جوړ مې د زړه سرېې ستا تصوير د زړه له پر وزي

خوب لکه د شپې خمار د لمر سمندرونو کې
اوړي په بستر کې بوی د شپو يې تر بستر وزي

ته لکه خزان په طلايي قدمو ولاړلې
زه لکه سوړ ژمی تش کالبد مې له دې در وزي

ستا ښکالو سپرليه څانګې، څانګې په رګونو کې
داړې د سرو، وينو تر پرهر وتر ځګر وزي

۹/۸/۱۹۹۶
کراچۍ

دا فــراق لوســتلې شــپې دي بــل څوک نشــته يــوه زه يــم
د ګرېوان زخمــي کــوڅې دي بــل څوک نشــته يــوه زه يــم

ځوان امــام بــوړا ســاقي دی څه رنــځورې ميکــدې شــوې
زنــدی زلفــې د پيــالې دي بــل څوک نشــته يــوه زه يــم

د لېمــو پــه پــانو راغلــې تنــګک مــابنام اوړده خوبونــه
يــوځك خيــال زر پيمــانې دي بــل څوک نشــته يــوه زه يــم

لمــر وتلــی لــه دې بناره ســپوږمۍ نــه راځي محــل تــه
شــپې خپــه ورځې بيــدې دي بــل څوک نشــته يــوه زه يــم

ستوري مات شول ستوري، ستوري تور مابنام مسکا وې توري
يــوه ســايه ســل آينــې دي بــل څوک نشــته يــوه زه يــم

د برســات ســيورو کــې راغلــه د اغزيــو بارانونــه
د هــوا تناکــې پــښې دي بــل څوک نشــته يــوه زه يــم

۱۵/۸/۱۹۹۵

کراچی



| دا فراق صنم، صنم دی دا کوڅې محل محل دي |
|---|
| يويې خيال دی يوه شپه ده ټول ماحول غزل غزل دی |
| لاجوردي يې د خيال سترګې ستوري، ستوري سترګکونه |
| د نظر ناوي مې وزينه رود نيل اجل، اجل دی |

یوسفه راشه چې ګرېوان ته ژاړو
په هر یو تار د اور باران ته ژاړو

د زخمو شونډې سپرېدلې پاتې
د اغزو ستن غواړو بیابان ته ژاړو

لکه چمن چې زړه مو شین و ښه و
د لمر په اوښکو و خزان ته ژاړو

دا په کعبه څنګه تیارې راغلې
ابابیل چېرې دی؟ آسمان ته ژاړو

نه مو شپو سیوری نه رڼا راوړله
خیال د سپوږمۍ ښکلوو ځان ته ژاړو

څو د بڼو په پل د اوښکو په لار
ساربان مو نشته و کاروان ته ژاړو

۲/۲/۱۹۹۳

پېښور

# د یتیم اوښکې

یوه ورځ پاچا په لار د کلي راغی
په بامونو په کوڅو شور او غوغا شوه
یو یتیم ماشوم پوښتنه وکړه چا نه
د پاچا په تاج کې څه دي؟ چې رڼا شوه
چا ځواب ورکړ: زه نه پوهېږم څه دي
داسې ښکاري متاع ګرانه چې ځلا شوه
بوډۍ وړاندې شوه او داسې وويله:
دغه جوره ستا په وينو زما ژړا شوه
موږ د دې شپانه په لښته غولېدلي
دغه شرمښ ته تولنه نابينا شوه
فقيرغل دی چې رانيسي ملك او کلی
چې پاچا مال د ملت خوري نو هم غلا شوه
په ژړا د يتيمانو نظر وکړه
ورښکاره به شي رڼا د ګوهر دا شوه
د رښتيا خبرو څه فايده "پروينې"
هغه څوك دې چې رښتيا يې مدعا شوه

دا ورځې دې نه غواړم د ستورو ډك مابنام راكه
خم ته د لمر سور شفق ساقي راكه او جام راكه

تولـه شپه پروين، پروين د سيورو پـه تالونـو كې
مينځم د تيارو څونې سپوږمۍ هسكه پـه بام راكه

زه به لېمې فرش كړم زه به لار پـه وېښتو جوړه كړم
څرك يې د راتلـو د يـوه خيـال د يـوه گام راكـه

شـونډې د پرهـر خـزان وهلـي پـاڼې، پـاڼې دي
داسې سپرلی غـواړم چې تمـام يې ناتمـام راكـه

سـر د نـرگس تيـټ د لطـافت د اينـو سـره
سر لـوړ پـه اغزو كې د گلاب شـاني گلفـام راكـه

۵/۱۰/۱۹۹۶
كراچۍ

زړه مې په ښو د لمر صنم ته ځي
دا شهيد شفق رنګين پرتم ته ځي

ته د شپو ادا شه زه آسمان يمه
ستوري په ډيوو د سپوږمۍ چم ته ځي

څه که د سبا ښې زخمي شوې دي
اوس به په تناکو ښو سم ته ځي

پورته يې کړې پلو د غوټۍ ښکلي شو
دا نرم نګهت چې لاعدم ته ځي

لار د ادراک راکه حسنه! ستا يم دې
توان د ګوتو ګوره چې قلم ته ځي

عکس چې يې پريوت په آئينو د عشق
تاج د صبا غېږې د حرم ته ځي

۸/۱۰/۱۹۹۵
کراچۍ

۞۞۞



يو زر جامه سل مابتامه جار شه ستا له دې هجرانه
جار شه ستا له دې هجرانه سپوږمۍ ستوری دوه جهانه

ادامـــې د وختونـــو د بـــازاره ســـره درومـــي
دا غــم څه ظــاهر بيــن شــو چــې دداره ســره درومــي

څوانــي يــو دريــښې پــه څه سـايه، سـايه مـاحول كــې
لمــر غــاړه غــړې كــبرې د چنــاره ســره درومـــي

ســتا خيــال لكــه دوې ستركې د ښو تــورو لاســو كــې
دســتورو جــوړ مــيزان كــې د ســهاره ســره درومـــي

خداى(ج) زده چې بيا به شنه شو په فطرت كې د غنمو
زړه چــاودي آهاړونـــه د بـــهاره ســـره درومـــي

بلبلــه د نفــس مــۆ د ښتــى پــه پنجــرو كــې
پـــه ســوې نالــه راشــي د چغــاره ســره درومـــي

۱۰/۱۲/۱۹۹۶
كراچى

ته یو ځلې بیا راشه ستا بلا زما په سترګو
پریشان مې په سبا شه ستا بلا زما په سترګو

کچکول د سپوږمۍ غاړه کې د شپو زلفې خورې دي
راتوی له ثریا شه ستا بلا زما په سترګو

لیمې آئینې فروشتې او جوهر، جوهر ځګر دی
بازار کې مې بها شه ستا بلا زما په سترګو

کږې، وږې دي لارې او پڼې مو د اغزو دي
همدمه! رهنما شه ستا بلا زما په سترګو

د زړه په پیمانه کې ستا یادونه څاڅکي، څاڅکي
دلبره! ساقیا شه ستا بلا زما په سترګو

۲۱/۱۲/۱۹۹۶
کراچۍ

ادا چې په سرو شونډو شي ګلاب صنم، صنم شي
اغزي وي ښخ په زړو کې چې ماښام پرتم، پرتم شي

دا شپه لکه سرتوره ساقي پښو ته د خم ناسته
د ستورو پيالې واړوي مدهوشه په دم، دم شي

سخاوي د سپوږمۍ چې اوښکې راشي ګوهرونه
احساس دوږخ، دوږخ په اننګو کرم، کرم شي

کلونه د فراق او زمونږ سترې مزلونه
رڼا، رڼا شي لارې چې يې خيال همدم، همدم شي

خودي لکه محک په سپينو ګټو کې د خاورو
نقوه، نقوه بازار کې په طلا قدم، قدم شي

د زړه په شنه تناکه د چا ياد زرين خوبونه
آسمان شي شنه پياله د لمر بانه ورته خم، خم شي

ته ښه يې زما درده د احساس جذبه دې راکړه
پرهر، پرهر په شونډو نغمه ګر مرهم، مرهم شي

۲۴/۱۲/۱۹۹۶
کراچۍ

زخمونه په خندا دي او دردونه په والله
ماښام دی تنهايي ده او يادونه په والله

صرير په غزلونو کې نفس د تصويرونو
کاغذ ديوان توري لفظونه په والله

کوځو ته د ښو مو پاچهان د اوښکو راغلل
تختونه اننګي شوه ګرېوانونه په والله

دا لمر په سرکو شونډو فاتحه د ورځې لولي
سپوږمۍ په نيمه لپه تولـه غرونه په والله

د درك په غم خانه کې پرهرونه په حلقو شوه
سماع، سماع کړي څرېکې او دردونه په والله

زموږ تر دل آباده ستا د خيال کډې راغلي
تول دښت کېږدۍ کېږدۍ شو او ښارونه په والله

۳۰/۱۲/۱۹۹۶

کراچۍ

تاراته وکتل خندا مې زده کړه
چې تا ژړله نو ژړامې زده کړه
څه امتحان ته دې پرې ايښې يمه
هرڅه چې يمه خو دا ستا مې زده کړه

چې هر ماښام په هر سبا اړوو
د ژوند تصویر په انتها اړوو

وخت د تناکو پښې راکړي را
داغزو کډې په صحرا اړوو

بانه ګیر خیال او اوږدې شپې د فراق
بار د سپوږمۍ د غره تر شا اړوو

ستوري چې مات شي د ګرېوان ګودر ته
د موجو څوکې په سما اړوو

څانګې د ګوتو موکړې وړې شي
چې د قلم غم په خندا اړوو

۲۰/۱/۱۹۹۷
کراچۍ

په هرقدم د وينو غوړپ کوو د ښاره وځو
لکه شفق پياله په لاس تل د بازاره وځو

موږ د آئينو جامې په تن د لمره ستوري اخلو
بهير د سيند يو په وار، وار د خپله باره وځو

سايې د زلفو مازديګر ته ماښامونه لولو
رڼا د مخ سره چې شپه يو له سهاره وځو

يو څه ښايست، يو څه ادا يو څه ژړا رانيسو
د غم عنوان يو د خوښيو د کتاره وځو

د غزل شاه ته سجدې پخپلو څانګو کوو
مخ د سپوږمۍ يو د تيارو د څنګل زاره وځو

۱۲/۱۱/۱۹۹۷
کراچۍ

بې ګامې ستا ذکرونه په بار، بار وکړه بیده شوم
لمونځونه د وفا مې تر سهار وکړه بیده شوم

سپین ستوري زما لمن کې د سپوږمیو هار په غاړه
محشر، محشر سودا مې په بازار وکړه بیده شوم

ته شاه شاه جهان وې زه ملنګه د جهان شوم
سجده مې ستا په در او په دربار وکړه بیده شوم

راتوی شوم لکه پرخه د ګلپاڼو د لاسونه
بوسه د لطافت مې خار په خار وکړه بیده شوم

ستا خیال وو حسن، حسن او زه سر تر پانګاه وم
مېله مې په خلوت کې د بهار وکړه بیده شوم

ستا لاس زما په لاس کې او زما سترګې ستا په سترګو
بې تا مې خنګه تا ته د زړه لار وکړه بیده شوم

څوك وایي خیال د چا د چا احساس ته نشي تللی
ما توله شپه له تا په سندو یار وکړه بیده شوم

۱۹/۱۲/۱۹۹۷
کراچی

تصـــور يـــې لکـــه شپې د بـــاران اوري
داســـې اوري لکـــه ســـتوري آســـمان اوري

مـــوږ د شـــپې پوړنـــي اخلـــو رڼا پلـــورو
تـــن د شـــمعې يـــو تيـــارې مـــو پـــه ځان اوري

چې نـــه خپلـــه نـــه يـــې خيـــال راســـره مـــل دی
پـــه قـــدم، قـــدم تينـــدك مـــو هجـــران اوري

څه ســـفر دی چـــې مـــنزل د ســـفر نشـــته
بـــې بـــهاره چـــې خـــزان پـــه خـــزان اوري

پـــه رکـــوع د بـــڼو اوښـــکې پـــه ســـجده ږدو
پـــه محـــراب بـــاندې د زړه مـــو جانـــان اوري

دا د چـا د خيـال پـه خيـال کـې سـپرلي راغلـل
چـــې د ذهـــن پـــه زخمـــو مـــو ګلان اوري

۸/۳/۱۹۹۳

پېښور

ماښامه توره په تيارو دې نه يم
د تسورو پړق يمه په شپو دې نه يم
ته راته لوله سرې غرمې د اهار
کښېت د غنم يم په غرمو دې نه يم

شپه د ستورو، ورځ زرينه
عطر بويه هوا سپينه
ورځ دې دا شه شپه دې دا شه
زما وطنه: زما شيرينه

مرحوم ننګیال ته

# لمن وچې وریځې

"سږکال به هېڅکله سپرلی رانه شي"
اسمان به هم په الماسي خندا وو
په تورو لړو کې ړنا ونه کړي
ځکه اوریځې لمن وچې دي باران نه لري
ماښام به څنګه راشي؟
د پیالو ملاوې ماتې
د خمو شونډې غوڅې
د میخانې ژبه په حلق کې پرې ده
ساقي شهید زلمی دی
د خپلو وینو په کفن کې تر شفقه درومي
تیارې به هم رانه شي
هغه تیارې چې په کمڅو کې ماشومان زنګوي
هغه تیارې چې اننګو کې ثریا ځلوي
هغه تیارې چې په جبین خال د سپوږمۍ وهي
ځکه تیارو، تیارو ته کډه کړې
ټولې تبجنې پرتې
د تورو، وریځو د تلتک د لاندې

سپېدې به څنګه خاندي؟
زموږ وطن دی هديرې، هديرې
زموږ کوڅې لکه يتيمې نجونې
او دروازې لکه شهيدې شونډې
پترې نيولې او تړلې د أبد تر حده
په بام سپېرې، سپېرې سيلۍ قابضې
د لمر زرين جام به په څه څنځيري
د سرو غنمو سندريز فصلونه
د ژېړو، وړو طلايي پېغلتوب
ذرې، ذرې د ډاګ په څېرې لمن
انبار، انبار پروت دی
"سږ کال به هېڅکله باران رانه شي"
ريښې به وچې شي د وچ چنار تر وچو ګوتو
او شنې غوټۍ به په سره ښکلې ژبه
د سپين شبنم سره مجلس ونه کړي
څانګې به هسې شي سرتورې پاتې
څکه د پاڼو لوپټې به پرې سايه ونه کړي
"سږ کال به هېڅکله سپرلی رانه شي"
څکه اوربځې لمن وچې دي باران نه لري

۶/۵/۱۹۹۸

کراچۍ

د قوسينو فردونه مرحوم ننګيال د يوه شعر نه اخيستل شوي دي.

بیا د بام تر څوکو څاځي ستا ښکلا، ښکلا خیالونه
لړیې غبږ کړکی ته ورکړه خلاص یې دواړه وزرونه

ستا د غم سره نکاح مې د ازل پاچا لوستلې
راته ګوره ملکه یم را سره دي لښکرونه

د ښو په تنکی ملاوو د لېمو په لطیف جسم
څنګه کړمه بارانونه، څنګه ورمه ډک سیندونه

جوړ زما د زلفو ول شي چې د ساه عطر دې راشي
د سبا باده خرامه چې پرېشان راوړي مزلونه

د فراق خلو تکده کې تر سحر شپه روښول دي
زما پېغلو تورو څنو کښېږده ډک د ستورو دوه لاسونه

۱۳/۹/۱۹۹۸
کراچۍ

# ایمان

یو دی کاروان
بله د کاڼو نقریي صحرا
د څو اوښانو طلایي کتار
په سپینو شګو کې چې پلونه اېږدي
ته واسکې دي د سرو زرو
د سپین زر په تټر
یو دی کاروان
اوښان یې لنډې، لنډې ساوې کاږي
حلقونه وچ
د وچ کوهي په شانې
څو مسافر وریسې
شونډې یې وچې د صحرا د وچو ګلو په شان
په یو سفر روان دي
پهلوی خطر وردرومي
ناڅاپه رېغ شو لکه تندر خپور شو
درېغ د ډاره د اوښانو د پښو لاندې
کاڼي
سرڼو غوښا شوه فریادونه شوه
جګ
د مسافرو چوپتیا
د څو اوښانو رمبار

چاوې چې څه وشوله؟
يوه شېبه وروسته څرګنده شوه چې
څه به کېږي
غلو په کاروان باندې يرغل راوړی
د چا سره سپين
د چا دينار
د چا جامې ترې اخلي
يودی کاروان
بله د کاڼو نقريي صحرا
د څو اوښانو طلايي کتار
څو مسافر ورپسې
دغلو د ډلې مشر
يو ژنه کی د کاروان
پخپله ځان ته بولي
ځکه چې ځوان غلو ته
رېښتيا ويلي
ما سره شته دي يو څلوېښت ديناره
مشر پوښتنه کوي:
د کومې راغلې او په کومه درومې؟
ځوان په اوچت غږ ورته وايي:
زه بغداد ته ځمه
چې د ښځل خدای(ج) د نازولو سره واوسېږم
رڼا د هغو واخلم
مشر بيا وايي ښه دي، ښه دي
زر دينار راکړه

ځوان ورته وايي
زما په لاس کې نشته
مشر وايي څه؟
تا خو همداګړۍ ويل
ماسره شته ديناره
هلك ځواب ورکوي:
زه خو اوس هم وايمه ما سره شته ديناره
خو زما لاس کې نشته
زما د لاس لاندې جامه څيرې کړئ
زما تخرګ بربنډ کړئ
پکې پراته دي زما څلوېښت ديناره
يو دی کاروان
بل د اوښانو طلايي کتار
خو مسافر ورسره
يو ژنه کی د غلو په وړاندې ولاړ
ځواني يې بوی لري د شنو چندونو
د لمر تيکه يې په تندي باندې ځلېږي او ښکلو نه اخلي
شګې يې پښو د لاندې.
په مينه، مينه څو پاسته مهين غږونه کوي
مشر د غلو پرده ګومان د ټوکې مار کوي
خو چې پراڼيزي هاپټ خولي د جامو پرهار
چې نه څيرې کوي
او نه ترې خېژي څه شرنګا د دينار
نو ترې راوزي پوره د ژنه ګې په قول
ټوله څلوېښت ديناره

دغلو د مشر جوله غونډه چیرانه حیراني زېږوي
لکه اوښان هسې حیران ولاړ
لکه صحرا هسې مبهوته پرته
مشر له ځوان ځیني پوښتنه کوي
ته وې مجبوره له څه؟
مور، ته ریښتیا ووایه
ځوان دی په ډېر غرور سرهسکی ولاړ
لکه د لیرې غره سرهسکه څوکه
سترګې راپورته او ځواب ورکوي:
ما وعده کړې وه دا، د خپلې مور سره
چې زه به هیڅکله درواغ نه وایم
مشر د غلو په ژړا
زه و خپل خدای(ج) ته خیانت کومه
او ته د مور سره وفا کوې
ژړا، ژړا یې وچې تیرې او بوي د مځکې تل ته ورومي
یو دی کاروان
بله د کانو نقریي صحرا
د څو اوښانو طلایي کتار
څو مسافر ورسره
او څه د غلو ټولګی
توبې یې کښلې دي په چیغو ژاړي
کاروان اوښه
اوښان اوبه صحرا اوبه، اوبه ده.

۱۶/۹/۱۹۹۸
کراچی

# اتڼ چي ته!

چــېرې دی دلــــدار هغـــه د رزم نغمــــه ګر ســاقي
هغــــه اتــــڼ چـــي هغـــه ښاغلــــی ځنور ســـاقي

هغــــه چـــې اتـــڼ کـــې پـــه کـــږه وږه نـــڅا راځي
هغـه چې پيکـی پــه مـخ راخپـور کـي پـه ادا راځي

چـېرې دی چـې څوټي يـې پـه لـر او بـر مـاښام راوړي
تور په رانجه سرې سترګې ساقي راوړي او جام راوړي

ها چې د تندي پيالـه کې خاڅکی مې پـه خـال وهـي
هـاچې پـه نيم کـبـې نظـر د شـپو ورځو جمـال وهـي

لاس کـې يـې دسمال د سـرو وربښمـو پـه رپـارا شــي
سـور غـاټول لـه نـازه ورتـه کـوږ شـي پـه خنـدا راشـي

خاوره دوطن په مستی ښکل کړي پښو ته ترپ ورکړي
داسـې د اتـڼ د سرسـالار شـي ډول تـه خـرپ ورکـړي

کـوږ لکـه ليـنـده شي د ښو پـه څوکـو سـپر مـات کـي
ټول ميـدان ميونـد شـي د غليم پوره لښکـر مـات کـي

تـاو شــي او راتـاو شـي د جنـت ښکلـې هـوا راوړي
څوکــې د لمــن يـنې د بـــوډۍ تال پـــه ســما راوړي

واوړي او راواوړي مړوندونـــه يـــې ګېډۍ، ګېډۍ
ګوتــې يــې لــه نــازه او لــه قــاره شـــي کــړۍ کــړۍ

مـات شـي او رامـات شـي لکـه څانـګه د ښکـلا سـره
ښکل يې کړي کارتوس اوږې لـه ښکلې نرۍ مـلا سره

داسې دې رادرومي چې ورځ سپينه شپه زري راوړي
تـېر تــر کــوه قـــاف شـــي د پــري د لاس وښي راوړي

يـــو قـــدم و شـــاته دوه و مـــخ تـــه پـــه هـــنر ورشـــي
تـــود پـــه اتڼ رزم کـــي زمـــرۍ شـــي پـــه ســـنګر ورشـــي

زنې پـــه ګډا، ګډا راګډ لاس کـــې دســـمال ورکـــړي
سـپر لکــه پــوره ســپوږمۍ او تــوره د هــلال ورکــړي

نجونــو تــه تــر مــلا ژي پــه ټپــو، ټپــو يــې راولــي
شرنګ يې د بنګړو شي په نغمـو، نغمـو يـې راولـي

خوږ لالـی د خـور شـي او جانـان د خپلـې مينـې شـي
پـړك لاسـو تـه ورکـړي او ارمـان د خپلـې مېنـې شـي

خدايــږو چــې لاســونه پــه دعــا داســې دلــبر غــواړو
هغــه دې کــړو برېتــو خــاوند لکــه خنجــر غــواړو

۱/۹/۱۹۹۸
کراچۍ

# لکه للمي ګل

لکه للمي ګل د باران په تمه
لکه ګودر د منګو لمس ته تږی
لکه سپېدې
د رڼايي په ارمان
او لکه يو کور..
لکه يو کور چې
بې له ښځې وي
وران
داسې زموږ د وختو سترګې
انسان
يوه شېبه غواړي چې:
ساه و باسي
يوه شېبه غواړي چې:
خوب وکړي
د آرامۍ په لېچو
د آرامۍ په لېچو

مرحومې مستوره شال ته!

# زخمي بلبله

چېرې ولاړه څه په وشوه شپه غزله ورځ بولمله
د باګرام نه خپه شوې د کونړ زخمي بلبله

لېونۍ د حسن او شعر ذ داستان په مینه مسته
بې پروا د زر او زوره د یزدان په مینه مسته

تصور یې هسك تر څوكو غرونه، غرونه یې فكرونه
رواني یې د كلام وه د اوبو نرم مزلونه

حسرت زاره، زړه پرهاره، نرګس جسمه لاله رویه
سر یې هسك په خار اباد كې مسكه، مسكه ګلاب خویه

در ګوهر یې غزل حوره د قلم نوكه یې توره
د جهان په مخ څرګنده په پردو كې وه مستوره

اوښكې زما وریږي ستوري د ګرېوان په اسمان اوري
زه د "سیند"[1] په غاړه ناسته دا به څي د "شال"[2] په لوري
په وږمو یې وږجارو كړئ په ښایست یې كړئ ګل چمې
جنازه یې چې پرې دروَمې هغه دښتې هغه سیمې

---

[1] كراچۍ
[2] ياد مرحومې د كلي نوم



پروین فیض زاده ملال

## نور چاپ شوي آثار

| | |
|---|---|
| د اوښکو تصویر | شعری مجموعه |
| تبجنه سپوږمی | شعری مجموعه |
| سپینی پاڼي | لنډې کیسې |
| سپوږمی په خنګل زار کې | همدا اثر |



دانش کتابتون - قصه خوانی پېښور

په رخسار چې هوا راشي زه وايم تـه يې خو تـه نـه يې
چې ول، ول ګيسو مې وا شي زه وايم تـه يې خو تـه نـه يې

چې بـاران د ائينـو ګوتـې د اوريـځ تـر شـال بـهر کـړي
او برېښنـا لکـه رڼا شـي زه وايـم تـه يـې خـو تـه نـه يـې

چـې د کـسـو د غـوټو نـه سـتوري ووزي لـه حجابـه
ټولـه شـپه ژړا، ژړا شـي زه وايـم تـه يـې خـو تـه نـه يـې

چې سحر په سپين لباس کې زرين تاج په سر کې کښېږدي
لمر د ورځې شهنشاه شي زه وايـم تـه يـې خـو تـه نـه يـې

چې پرهر په څرېکو، څرېکو د نفس په تال کې کښېني
خيال و درد سره پخلا شي زه وايـم تـه يې خو تـه نـه يـې

۱/۱۰/۱۹۹۸

کراچۍ

> نـه دې راتـه وويـل چـې څـه زه
> نـه مـې درتـه وويـل چـې مرمـه زه
> شـپې د انتظـار لمـن، لمـن سـتوري
> ټولـه تـر سـبا، سـحر شـمېرمه زه

په زرونو ماښامونه په بنو کې
په زرونو سحرونه په ليمو کې
ستا خواهش لکه د لمر زرين خوبونه
يا سپوږمۍ د تورو شپو تورو لاسو کې

چې درته د آسمان تللي په څوکو د شبنو یو
ګرېوان د پسرلي کې تصور د بارانو یو

ستا غم ښایست، ښایست شو زموږ زړه یې شبستان کړ
څه ستوري د زخمو یو څه تنهاکې په اغزو یو

آینو ته دي د خیال یو په باران کې رسېدلي
د ګل پاڼې مو ښکل کړې اوس اغزو ته په سجدو یو

دا ستا د غمه جوړ سور مازدیګر دی لړ راګوره
د وخت تللي سهاره څه شفق د ننداړو یو

چینې، چینې، چینې یو د بېلتون اوښکې شبې یو
کټار، کتار منګي یو او ساقي د ګودرو یو

ته پرخه د سبا شوې او د لمر د ښځو تویې شوې
مونږ دښتې د حوصلې یو ستا د غم قبر په زړو یو

۱۵/۳/۱۹۹۳

پېښور

چې يې د خيال رنګين ماښام په سر د بام تويوو
توله آسمان د ستورو ځان په يوه جام تويوو

د لمر بانه تر زړه ختلي د شفق نظر يو
رڼا د زخم مازديګر په هر ماښام تويوو

عرش دې د مينې او وفا يو تيمت نظرې نه يو
دا په محراب د ګرېوانه د سجدو پام تويوو

د ښو چاله کې سپاره د ژوند سفر لنډوو
پنې د اوښکو مو په پښو دې ګام په ګام تويوو

د رنګ بازار کې د وخت حسن خال په وينو اېښی
جوهر د وينو آينو ته د ناکام تويوو

د غزل اوښکې پاکوو د ګل د پاڼو په لاس
د ګلبڼ وريو چې وفايې په کلام تويوو

شراب د عقل پخوو په لپو اور رااخلو
عطر د اور د څنو پښو ته د خيام تويوو

۲۲/۳/۱۹۹۳

پېښور

# سپوږمۍ په ځنګل زار کې




پروین فیض زاده ملال

۱۳۷۸ل

## کتاب پېژندنه

نوم : سپوږمۍ په ځنګل زار کې.

ویناواله : پروین فیض زاده ملال.

خپروونکی : دانش خپرندویه ټولنه.

کمپوزر : نجیب الله وصال.

نېټه : ۱۹۹۹ز ــ ۱۳۷۸ زمری.

شمېر : ۵۰۰ ټوکه.

د چاپ ځای : دانش کتابتون، قصه خوانی، پېښور ۲۵۶۴۵۱۳

# پیش نامه

قندهار پرته د خپل جغرافیایي اهمیت نه د سیاسي، علمي او ادبي اتلانو کور هم پاتې شوی دی- او بیا په تېره تېره د میوند په معرکه کښې د ملالې کردار د دغه خاورې په جبین یو داسې خال دی چې د عزم او رزم رڼا یې په هره پېښه او آزمایښ کې د ټول افغانستان د غازیانو راهنمایي کوي. دا خبره سمه ده چې افغانان به د ترقي یافته انسانانو غوندې د هر جدید علم نه د محرومۍ په وجه خوار وي. ولې د غیرت، ایمان او آزادۍ د جذبې په دولت دومره پټ، ماړه او شتمن دي چې ګرده نړۍ ورته نه رسېږي.

تر دغه وخته په افغانستان د روسي او وروستي جارحیت په موقع د افغانانو د غیرت او ایمان جذبه چې په کوم انداز د ملالې د چغې احساس راولړزوله، د هغې انجام روس د افغانستان د آزادۍ د تاریخ یو اهم باب ګرځولی دی.

زموږ شاعره پروین ملال هم د دغې خاورې ده- اګر که د زمانې بدلو حالاتو هغې ته د آزادۍ په دغه جنګ کې د ملالې د کردار لوبولو موقع ورنکړه- ولې د خپل قلم په ذریعه یې د ملالې یاد تازه کړ. د دښمن د وحشت او بربریت له لاسه د خپل هېواد د تباهیو په نتیجه کې د خپل احساس په ترجمانۍ کې وایي:

موږ د وطن د ټوټې زړه او وران کاکله جار کړي
اوس یې هم یاد کې له نمانځنامه و سبا ته رسو

او بیا د باروزو د باران په وجه د وطن د ګلستان حقیقت داسې نمایي:

پانې د ګلاب مو باروونو مروړلې دي
پرخې خوانې مرګې او شهیدې مو بلبلې دي

بیا د سې یو وخت هم راشي چې د جنګي تقاضو له مخه په دښمن د حملو. ګواښونو او شبخون د پاره په لکونو نر. ښځې په وطن پرېښودلو مجبور شي- او دغه مجبوري د پروین ملال هم وه. خو په مجبورۍ د وطن د غالبې مینې د اظهار په وخت وایي

په هر قدم د وینو غوړې کوو له ښاره وځو
لکه شفق پیاله په لاس اوس له بازاره وځو

پروین ملال لکه د یوې بې سپله مرغۍ د خپل ژوند د نامناسبو موسمونو په ګردش کې لا د خپلې ځالې په غم له سرګردانۍ خلاصه نه وه. د وطن د غم پرهرونه یې لا ورغلي نه وو. چې زمانې د ژوند د همسفر د بېلتون له حادثې سره هم مخ کړه. او لا د هغه د یادونو چپې هم قرارې شوې نه وې. چې د ځوانې مرګې خور فیض زاده رسولي کریمه د فراق بدې ورځې هم ورباندې پېښې وکړه- وطن خو یې د میرویس خان او احمدشاه وارثانو له غلیمه آزاد کړو- آباد به هم شي او ښاد هم- خو د پروین ملال په زړه د دوه داغونو په شکل د دوه قبرونو د منجورۍ احساس شاید چې د هغې د باقي پاتې ژوند د پاره د څه لړ ډېر اطمینان لامل هم وګرځي.

غم که له غمه شرمېدلی
په ما به نه راتله دلی دلی غمونه

همېش خلیل
۲/جولائی/۱۹۹۹ ء